# تَعلِیمُ العَقَائِدِ

یعني

# صحیح عقیدې

لیکوال:
مفتي طاهر محمود مدظله
جامعه اشرف العلوم بیت المکرم

ژباړه:
مولوي باقي بالله فضلي عفي عنه

نوټ:
دغه رساله زموږ د فیسبوک پر صفحې سلسله واره نشر شوې ده ، تاسو کولای شئ چې د لازیاتي استفادې لپاره زموږ فېج درسره لایک کړئ
فېج (صفحه) په همدغه نامه ده «مولوي باقي بالله فضلي».

# سريزه :

## نحمده ونصلي على رسوله الكريم

امابعد !

صحيح اوروغه عقيده هغه اساس اوبنسټ دی چي پرهغه د انسان فلاح او نجات راڅرخي ، د عقيدې له سموالي پرته ښه عملونه اوکارونه هيڅ قدراوقيمت نه لري .

همدا سبب دی چي قران کريم پرعقيده ډېرزوراچولی ، ترديې چي فرمايلي يې دي : «إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ...» . يعني الله تعالى د عملونو کوتاهياني چي چا ته يې خوښه شي ورمعافوي يې ، مګرد شرک (يعني د عقيدې د کوتاهي) د بخښني ګجايش د الله په نزد نشته .

له دې څخه په ښه توګه اندازه لګولای شو چې د عقيدې اصلاح او سمون په اسلام کی څومره مُهتَم بالشان دی ، څومره أهميت ورکول شوی دی!!.

له همدې وجي په هردَور کي باطلو قوتونو د مسلمانانو پر عقايدو مرګوني ګذارونه کړي او د خرابېدو هڅي يې کړي او کوي يې .

خو علماء کرامو ته دي الله تعالى بې شمېره اجرونه ورکړي ، او بې شمېره رحمتونه دي پرې نازل وي چي دوی هم په هردَور کي ددغه باطلو ځواکمنو د مکر او چم پَردې څيرلي دي ، او د اسلامي عقايدو له هر رازخرابي ، شکوکو او شبهاتو څخه د ساتلو کارې په ډېره عالي توګه انجام کړی دی ، په هره زمانه کي په دې اړه کتابونه ليکل شوي او ليکل کيږي .

عمومًا په مدارسو کي د عقايدو تعليم په لوړو کتابونو کي ورکول کيږي ، په ټيټو درجو کي د مبتدی طالبانو لپاره د عقيدې په اړه کوم د پام وړ کتاب نه ويل کيږي

نو لکه څومره چي د عقايدو اهميت مُسلَّم دی ، او څومره موږ اړتيا ورته لرو ، هغومره يې زموږ په ديني مکاتبو کي د زده کړي اهتمام نشته ، د لوړي درجي د طالبانو لپاره «شرح العقائد» خاص د همدې موضوع کتاب دی ، خو د هغه په ويلو سره بيا هم طالب ته د زمانې مطابق د نويو باطلو ډلو او د هغوی د باطلو نظريو په اړه کومه خاصه آګاهي او پوهه نه حاصليږي.

په دې اړه همدغه رساله ډېره ګټوره ده ، د ايمان مفصل تشريح په داسي انداز پکي شوې ده ، چي د ټيټي مرحلې د استعداد مطابق ده ، او ضمنًا د موجوده زمانې دځينو باطلو فِرقو په لنډه توګه پيژندنه او د هغوی پر باطلو عقايدو په مختصره توګه نقد هم پکی واضح شوی دی .

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ

پوښتنه (۱) :

د عقيدې معنى څه ده؟

جواب :

عقيده په لغت (يعني عربي ژبه) کې تړون يا تړلو ته وايي ، او په اصطلاح کې عقيده د دين او مذهب په اړه هغو نظرياتو ته وايي چې په زړه کې يې مُحکم (ټينګ) ځاى نيولى وي .

پوښتنه (۲) :

عقيده څه أهميت او ارزښت لري ؟

جواب :

عقيده د انسان په کردار او اعمالو کې بُنيادي (بنسټيز) حيثيت لري ، ځکه چې د انسان د ټولو اخلاقو او اعمالو بُنياد اراده ده ، او د ارادې مُحَرِّک بيا زړه دى (يعني اراده د زړه په واسطه راولاړيږي) او دا ښکاره خبره ده چې زړه د هغو شيانو اراده کوي کوم چې په ده کې راسِخ او مُحکم وي . نو د انسان د اعمالو او اخلاقو د سمون لپاره دا ضروري ده چې دده په زړه کې صحيح عقيدې موجودې وي ، په همدې سبب د عقيدې اصلاح تر هر څه مهمه ده .

پوښتنه (۳) :

دين يا مذهب څه ته وايي ؟

جواب :

دين يا مذهب په لغت (يعني عربي ژبه) کې هغه طريقې او قانون ته وايي د کوم چې پيروي او متابعت کيږي . عام له دې که هغه قانون سم وي که غلط . او په ديني ژبه (اصطلاح) کې دين يا مذهب د الله تعالى هغه مقررې او ټاکل شوې طريقې ته وايي چې انسان يې په خپله خوښه اختيارولو سره حقيقي برى ترلاسه کړي .

پوښتنه (۴) :

زموږ دين څه دى (کوم دى) ؟

جواب : زموږ دين اسلام دى ، همدا هغه دين دى چې د انسان د نجات او خلاصون ضمانت ور کوي ، د اسلام ددين په خير جامعِيَّت ، کمال ، جاذبيت (کشش) په کوم بل دين او مذهب

کې نشته ، همدا د اسلام مذهب د ټولې نړۍ د انسانانو لپاره د کامیابي ضمانت ورکوونکی دی .
د الله تعالی په نزد له اسلامه پرته بل هیڅ دین د قبول وړ نه دی ، چا که له اسلام څخه علاوه بل دین او مذهب غوره کړ، هغه به د دنیا او آخرت پرخسارې او ناکامي سربېره د الله تعالی د غیظ (غضب) مُستحق هم وي .

پوښتنه (٥) :

د اسلام دین د کوم شي نوم دی ؟

جواب :

د اسلام دین د عقیدې او د عمل د دواړو مجموعي نوم دی ، یعني الله تعالی او د هغه رسول چي پر کومو شیانو د ایمان او عقیدې لرلو حُکم کړی دی ، پر هغوی باندي په زړه کې پوخ یقین درلودل ، پرژبه یې اظهار او د منلو اقرارکول ، او خپل ژوند د هغه مطابق تېرول ، ددې ټولو (په مجموعي ډول) نوم د «اسلام دین» دی .

پوښتنه (٦) :

ایمان او اسلام څه ته وایي ؟

جواب :

الله تعالی او د هغه رسول چي کومي خبری موږ ته راښودلي دي ، پر هغو باندي په زړه کي په هماغه ډول لکه څنګه چي دوی راښودلي دي یقین کول او ورشتیا یې ګڼل «ایمان» بلل کیږي .
او همدغه یقین او تصدیق پرژبه ښکاره کول او اقراریې کول ، او خپل ژوند د هغه مطابق تېرول اسلام بلل کیږي .
نو خلاصه دا چي ایمان د اسلام لپاره بنیاد دی ، د اسلام تعمیر پر ایمان ولاړ دی ، له ایمانه پرته یوازي په ژبه اقرار کول منافقت دی ، نو د الله تعالی په نزد له ایمانه پرته نه اسلام اعتبار لري او نه کوم ښه عمل .

پوښتنه (٧) :

د مسلمان کېدلو لپاره پر کومو شیانو ایمان (یقین) درلودل ضروري دی ؟

جواب :

یو ځل حضرت جبریل علیه السلام د نبي ﷺ حضور ته راغی او د أمت د تعلیم لپاره یې څو پوښتني تري وکړې ، چي په هغوی کي یوه پوښتنه د ایمان په هکله وه . رسول الله ﷺ د هغه په

جواب کې د کلمه شهادت څخه علاوه نوري هغه بُنیادي خبري بیان کړې د کومو تصدیق او منل چې د ایمان لپاره ضروري دی .

هغه خبري په «ایمان مُفصل» کې را جمع شوي دي :

### ایمانِ مُفَصَّل :

آمنتُ بالله ، وملائِکَتِه ، وَ کُتُبِه ، ورُسُلِه ، وَالْیَومِ الآخِرِ ، والقَدْرِ خَیرِه وشَرِّه مِنَ الله تعالی ، وَالبَعْثِ بعدَ الموتِ .

یعني ما ایمان راوړی دی پر الله ، او د هغه پر فرشتو ، او د هغه پر کتابونو ، او د هغه پر رسولانو ، اود قیامت پرورځي ، اوپرتقدیرچي هرخیراوشر د الله تعالی له لوري دی ، اوله مرګه وروسته پرراژوندي کېدلو.

په دغه ایمان مفصل کې هماغه شیان رایوځای شوي دي پرکومو چي ایمان درلودل لازمي دی ، که څه هم د ایمان مُفصل یادول ضروري نه دی ، خو دا ضروري دی چي دغه شیان لازمًا باید مسلمان ته معلوم وي ، او ایمان باندي ولري ، نوددې لپاره غوره دادی چي ایمان مفصل یاد شي .

پوښتنه (٨) :

کُفرڅه ته وايي ؟

جواب :

د کومو شیانو چي تصدیق اوپرهغوی ایمان درلودل ضروري دی ، له هغوی څخه انکار(که څه هم له یوې خبري انکاروي) کُفربلل کیږي ، لکه د الله تعالی نه منل ، یا د یو پیغمبرنه منل .... اوکافران به د قیامت په ورځ همېشني اور ته داخلیږي .

پوښتنه (٩) :

شِرک څه ته وايي ؟

جواب : د الله تعالی په ذات ، صفتونویا عبادت اوبندګي کې بل څوک شریک اوګڼ بلل شِرک بلل کیږي ، مثلا هندوان ډېرخدایان مني ، عیسایان حضرت مَریم او حضرت عیسی (علیهما السلام) هم خدایان بولي .

په صفاتو کې له الله پاک سره د شریک ګرځولو معنی داده چي د الله تعالی کامِل صفتونه د بل چا لپاره هم ثابت وبلل شي ، مثلا د یوه پیر او فقیر په هکله دا عقیده وساتل شي چي دَی اولاد ورکولای شي ، باران اوروِلای شي .

او په عبادت کې د شریک ګرځولو مطلب دادی چې له الله تعالی څخه پرته بل څوک هم د عبادت لائق وبلل شي ، مثلا قبر ، یا پیرته د عبادت په حیث سجده کول ، له الله تعالی څخه پرته د یو پیر په نوم نذر منل .

---

## پر الله تعالی ایمان درلودل :

پوښتنه (١٠) :

د الله تعالی په اړه به مسلمان څنګه عقیده لري ؟

جواب :

الله د داسې ذات نوم دی چې یو دی

الله : ټول ښه او غوره صفتونه په ده کې موجود دي

الله له هره عیبه پاک دی

الله په ذات ، صفاتو او عباداتو کې هیڅ بل شریک نه لري

الله همېشه و ، او همېشه به وي (یعني داسې وخت نه و چې الله نه و ، او نه به داسې وخت راسي چې الله تعالی دي نه وي).

الله ټول موجود شیان پیدا کړي دي ، خو دَی هیچا نه دی پیدا کړی

الله : چې چا ته خوښه شي په خپل اختیارېې پیدا کوي ، او چا ته چې یې خوښه شي په خپل اختیارېې فنا کوي

الله : د دنیا هر څه دده په اختیار او اراده سره کیږي

الله هغه هره خبر اوري او هر څه وینې

الله په هر لوی واړه شي خبر دی

یوازې الله هر چا ته رزق ورکوي

الله : عزت او ذِلت ټول دده په اراده سره دي (چا ته چې یې خوښه شي عزتمن یې ګرځوي، او چا ته چې اراده وکړي ذلیل او خوارېې ګرځوي).

الله : ژوند او مرګ دده په قبضه کې دی .

پوښتنه (١١) :

ایا انسان د الله تعالی ذات فهمولای سي؟

جواب :

د الله تعالی د حقیقت عِلم د انسان ترتوان او طاقت وتلی کاردی ، هیڅ یو عقلمند او د پوهي خاوند د الله تعالی حقیقت او ذات ته نه دی نه رسېدلی چي مالوم یې کړي . (ولایحیطونَ بِه عِلمًا . طه:۱۱۰).

موږ الله تعالی د هغه په کاملو صفتونو سره پېژنو.

پوښتنه (۱۲) :

الله تعالی موجود دی (شته) ، خو ځیني انسانان دا فکرکوي چي د الله هیڅ شتون نشته ، نو لِهذا د الله تعالی پروجود یو عقلي دلیل راته وښیاست ؟

جواب :

ددغسي انسانانو ذکرشوي عقیده خو معلومه خبرده ، چي د هیڅ یو هوښیار او عقلمند د توجه وړ نه ده .

د لږ فکرخبرده چي یو معمولي کارهم بېله یو کوونکي نه شي کېدلای ، نو دومره لویه د عالَم کارخانه ، چي په هغه کي ورځ هم شته شپه هم ، باران هم اوربېري خشک سالي هم وي، مطلب یو داسي نظام به چي له نه نقص سره سره نهایت مُنظم او عالیشانه دی څنګه پخپله پیدا کېدلای شي ؟ او خود بخوده (پخپله) څنګه چلیږي ؟

لازمًا دا خبره عقل ته تیریږي ، او دا به منل کیږي چي دا نظام یو جوړوونکی لري ، چي له جوړولو وروسته یې په منظم ډول چلوي هم ، همدغه پیدا کوونکی او ددې نظام چلوونکی الله تعالی دی .

له یو صحرایي عَرب څخه پوښتنه وشوه چي تا الله تعالی څنګه وپېژندی ؟

هغه ورته وویل :

البَعرَةُ تَدُلُّ على البعِيْرِ ، الأثرُيَدُلُّ على المَسِيرِ، فالسمآءُ ذاتُ الأبراجِ ، والأرض ذات الفجاج كيفَ لايَدُلانِ على اللطِيْفِ الخبير!؟

یعني د اوښ پچي ته په کتلو سره دا مالومیږي چي دلته یو اوښ تېرشوی دی ، او د پښي قدم ته په کتلو سره دا مالومیږی چي دلته یو تلونکی تېرشوی دی . نو د لویو لویو ستورو ، لمر او سپوږمی له آسمان څخه ، او دا د وسیعو او پراخو لارو له ځمکي څخه به څنګه دا نه مالومیږي چي یو لطیف او خبیرذات شته ؟ (یعنی دا هرڅه پردې دلالت کوي چي الله شته).

نو تاسي وګورئ یو عام او ساده صحرایي چي عالم ، فاضل او مُحقق نه دی ، خو په معمولي غور او فکر د الله شتون فهمولای شي ، نو هغه خلک چي د دومره ښکاره نښانو سره سره بیا

هم د الله تعالی له وجود څخه انکارکوي ، ددوی په حق کې ویلای شو چې پرعقلونو یې پردې لوېدلي او د عقل سترګې یې ړندې دي .

پوښتنه (۱۳) :

ددې خبرې دلیل څه دی چې الله یو دی !؟

جواب :

پخپله الله تعالی په قرآن کریم کې ځای پر ځای خپل وحدانیت بیان فرمایلی دی (او زموږ لپاره همدا دلیل کافي او بس دی) الله تعالی فرمایلي :«قل هوَ الله أحَد» یعني ووایه چې الله یو دی.

او فرمایلي یې دي : «والهُکم الهٌ وَاحدٌ لآاله الا هوَ الرحمن الرحیم» . یعني او ستاسې معبود یو معبود دی ، له هغه پرته چې رحمن اورحیم ذات دی بل مَعبود نشته ،

پوښتنه (۱۴) :

ځینې انسانان د الله تعالی وجود مني ، خو په دې عقیده دي چې معبودان ډېردي یو نه دی ، لکه هندو ، عیسایي وغیره ، ددوی لپاره یو عقلي دلیل که بیان کړئ ؟

جواب :

تریوه زیات معبودان هم د عقل خلاف دی او هم د فِطرت ، که سوچ وشي په دې دنیا کې پر یوه کوچني هیواد هم د دوو تنوحکمراني او بادشاهت نه شي چلېدای ، نو په دې دومره لویه نړۍ او دُنیا کې له الله تعالی سره په خدایي به بل څوک څنګه شریک شي !!؟

ځکه د دوو خدایانو په صورت کې به یا د دواړو ترمنځ همېشه اتفاق وي ، یا اختلاف ، که د ددوی ترمنځ همېشه اتفاق وي نو په دغه صورت کې دوهم خدای ته هیڅ ضرورت نشته ، ځکه کله چې په دوی کې د یوه فعل او اراده کافي وي نو دوهم ته څه اړتیا ده !؟ کله چې ددوهم ضرورت نشته نو هغه خو مُعطل پاتي شو ، او مُعطل کېدل د خدای له شان سره خلاف دی ، نو مالومه سوه چې دوه خدایان نشته .

او که ددوی ترمنځ همېشه اختلاف وي ، مثلا یوه زید نومي شخص ته د مرګ اراده وکړه ، او هغه بل د ژوند ، نو لازما به په همدغه یوه وخت کې زید ته یا مرګ راځي یا به ژوندی پاتي کیږي ، دواړه په یو وار نه شي کېدلای ، که زید مړ شي نو دوهم خدای د زَید له ژوندي پاتي کولو څخه عاجز شو ، او عُجز د خدای له شان سره خلاف دی . دغه رنګه که زید ژوندی

پاتې شي نو ګواکې هغه بل خدای له دې عاجزه شو چې زید مړکړي او خدای عاجز نه شي کېدای .
نو دا خبره ثابته شوه چې الله یودی دوه نه شي کېدای ، په خدايي کې شِرکت مُحال (ناممکن) دی ، د مشرکینو لپاره دغه مذکور دلیل ته په دغه آیت کې اشاره شوې ده :
لَوْكَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللَّهُ لَفَسَدَتَا (الأنبيآء :۲۲) .
یعني که اسمان او ځمکه کې ګڼ خدایان وای له یوه الله پرته نو په دوی کې به فساد رامنځته شوی وای (هغه نظام چې مونږ په دوی کې اوس وینو سره ګډوډ به شوی وای) .
پوښتنه (۱۵) :
د الله تعالی صفاتِ کمالیه کوم کوم دي !؟
جواب :
د الله تعالی د صفاتِ کمالیه ډېر دي له هغوی څخه ځینې په لاندې ډول دي :
۱) : وَحدَت :
یعني الله تعالی هم په خپل ذات کې یکتا او یودی ، او هم په صفاتو کې ، نه په ذات کې شریک لري نه په صفاتو کې ، لکه چې فرمايي : «قل هُوَ الله أحد» او بل ځای فرمايي : «ليسَ كمِثله شيءٌ» .
۲) : قِدَم :
یعني الله تعالی همېشه و او تل به وي ، نه یې ابتداء شته نه انتهآء ، لکه چې فرمايي : «هوَ الأول والآخر والظاهر والباطن» . او رسول الله ﷺ فرمايلي : «اللهم أنتَ الأولُ فليسَ قبلک شيء وانتَ الآخِر فليس بعدَک شيء» (مسلم) .
۳) : حَيات :
یعني ژوند ، الله تعالی ژوندی دی او ژوندی به وي ، د ژوند صفت الله تعالی ته همېشه همېشه ثابت دی .«الله لااله الا هوَ الحَي القيوم» .
۴) : قُدرَت :
یعني طاقت (زور) . الله تعالی ته پر هر شي برلاسی دی ، الله تعالی د ټول عالَم پر پیدا کولو ، او دټولو عالَم پر درولو ، فنا کولو او دوهم ځل پیدا کولو قادر دی ، د هغه له قدرت څخه هیڅ شی هم نه دی وتلی . (واللهُ على كُلِّ شيءٍ قدير) .
۵) : عِلم :

یعني الله تعالی پر هر څه عالم او خبردار دی ، د هغه له علم څخه هیڅ لوی او کوچنی شی نه دی وتلی ، هره ذره د هغه په علم کې ده ، په هر شي باندي هم تر پیدا کېدو مخکي او هم تر فنا کېدو وروسته عالم دی ، د انسان په زړه کې پیدا کېدونکي خیالات ، په تکه توره شپه کې د تلونکي میږي د پښو حرکت هر څه د الله په علم کې دي ، عِلمِ غَیب (یعني د پټو خبرو علم) د الله تعالی خاص صفت دی .

لکه چي فرمایي :«یعلمُ مابینَ أیدیهم وماخلفهم» . بل ځای فرمایي : «انه علیمٌ بذاتِ الصدور» او بل ځاي فرمایي : «وعِندَه مفاتِحُ الغیبِ لایعلمها الا هوَ ویعلم مافي البَرِّوالبحرِ وما تسقط مِن ورَقة الا یعلمها ولا حَبة في ظلمت الأرض ولا رَطب ولایابس الافي کتاب مبین».

۶) : اراده :

یعني الله تعالی چي کوم شی وغواړي په خپله خوښه او اختیارېي پیدا کوي ، او کوم شی چي وغواړي په خپل اختیارېي فنا کوي ، هر څه چي کېږي د هغه په اختیار او اراده سره کېږي ، هغه په هیڅ کار او خبره کې مجبور او ناچاره نه دی . (فَعَّالٌ لِّما یرید) (وربُّک یَخلق مایشآء ویَختار) .

۷) : سَمع او بَصر:

یعني اورېدل او لیدل . الله تعالی بېله سترګو او غوږونو لیدل او اورېدل کوي ، د هغه لپاره تیاره او رڼا ، لیري او نژدې ټول په اورېدلو او لیدلو کی برابر دي . (وهوَ السمیع البصیر) .

۸) : کلام :

یعني الله تعالی بېله ژبي ویونکی دی ، هغه په وینا کې ژبي ته نه دی محتاج ، ځکه احتیاج د مخلوق صفت دی ، او الله له احتیاجه پاک دی ، او د الله تعالی د کلام کیفیت (څرنګوالی) موږ ته نه دی مالوم .

(وکلم الله موسی تکلیما) (سلامٌ قولا من رب رحیم) . وقال الامام الاعظم في الفقه الأکبر: ونحن نتکلم بالآلات والحروف والله یتکلم بلا آلة ولاحرف : ص۲) .

خبرتیا : دا خبره باید په ټینګه یاداشت شي ، چي الله تعالی د مخلوق له صفاتو څخه پاک دی ، د هغه صفتونه همیشه و او همیشه به وي ، هیڅ صفت یې هیڅ وخت هم ختمېدونکی نه دی .

په قرآن کریم او احادیثو کي چي د الله تعالی ځیني صفتونه یاد شوي دی لکه : لیدل ، اورېدل ، خبري کول ، لاس ، قَدم وغیره ، نو پر داسي صفتونو له ایمان لرلو سره سره دا عقیده په

کارده چې ددې اصل حقیقت او مراد الله تعالی ته مالوم دی ، زموږ عقل ددې له فهمولو عاجزدی ، موږ بېله دې چې ددغو صفاتو حقیقت وپېژنو اجمالا ایمان باندې راوړو. لکه چې الله تعالی فرمایي «والراسخون في العلم يقولون آمنا به : آل عمران ۷» .

۹) : تخلیق :

یعني پیدا کول . یوازې الله تعالی دی د ټولو مخلوقاتو پیدا کوونکی ، د مخلوقاتو په پیدا کولو کی هغه د هیچا محتاج نه دی. لکه چې فرمایي : «ذالکم الله ربکم خالق کل شيءٍ» . او فرمایي «وخلقَ كلَّ شيءٍ» او بل ځای فرمایي : «فان اللهَ غنيٌّ عَنِ العالمين» .

۱۰): اِحیاء و اِمَاتَت :

ژوندي کول او مړ کول . یعني ژوندي کول او مړه کول د الله تعالی په اراده او اختیار سره کیږی ، له هغه پرته هیڅوک هم چا ته ژوند یا مرګ نه شي ور کولای . (قُلِ اللَّهُ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يَجْمَعُكُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ لَا رَيْبَ فِيهِ وَلَكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ (الجاثية :۲۶) .... الَّذِي خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيَاةَ لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا.... الملك :۲) .

۱۱) : رَزّاق :

روزی ورکوونکی ذات ، یعني روزي ور کوونکی ، او په هغه کي زیادت او کموبوت راوستونکی ذات الله تعالی دی ، له هغه پرته د هیچا په قبضه کي دا نشته چې چا ته رزق او روزي ورکړي یا یې ورزیاته او کمه کړي (إِنَّ اللَّهَ هُوَ الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ : الذاريات : ۵۸) .

# پر ملائکو (فرشتو) ایمان :

پوښتنه (۱۶) :

ملایکې څوک دي !؟

جواب :

فرشتې د الله تعالی غوره مخلوق دی .

له نُور څخه پیدا شوي دي .

هیڅکله د الله تعالی نافرماني نه کوي ، د کوم کار حکم چې ورته شوی وي هماغه کوي .

نه خوراک کوي نه څښاک او نه خوب کوي .

نه ښځه دي نه نر.

د یو مومن لپاره لکه څنګه چې بېله لیدلو پر الله تعالی ایمان درلودل ضروري دی دغه ډول د الله پرنوراني مخلوق فرشتو هم ایمان درلودل ضروري دی .

پوښتنه (۱۷) :

ایا ملایکې د انسان په شکل یا په بل شکل راتللای شي !؟

جواب:

هو ! الله تعالی په فرشتو کې دا صلاحیت ایښی دی چې دوی له خپل شکل پرته په بل شکل ښکاره شي ، لکه د حضرت ابراهیم ، حضرت مَریم او حضرت لوط عَلَيْهِمُ السَّلَامُ په قصو کې چې ذکر دي چې ملایکې د انسانانو په شکل ورته راغلي وې .

پوښتنه (۱۸) :

د ملایکو شمېر څو دی؟

جواب :

د ملایکو شمېر له الله تعالی پرته بل چا ته نه دی معلوم (ومایعلمُ جنودَ ربک الا هو) المدثر:۳۱.

پوښتنه (۱۹) :

ایا ملایکې خپل نومونه هم لري ؟

جواب :

هو فرشتې نومان لري ، ځینې نومونه یې الله تعالی انسانانو ته ښودلي دي لکه :

جبرَئِیل، میکائِیل، اسرافیل، عزرائیل، مَالِک، رِضوان، مُنکَر او نکِیر، هاروت او مَاروت عَلَيْهِمُ السَّلَامُ

پوښتنه (٢٠) :

ايا الله تعالى ملايکو ته دندې او وظيفې سپارلي دي ؟

جواب :

هو!

الله تعالى فرشتو ته ډېر کارونه سپارلي دي ، مثلا حضرت جبرئيل عليه السلام کوم چي د ټولو ملايکو سردار دی ، هغه ته يې د وَحي دنده سپارلې ده چي أنبياوو ته به يې رسوي ، او د الله تعالى په حکم د بنده ګانو د اړتياوو پوره کولو دنده هم ده په غاړه ده .

او حضرت ميکائيل عليه السلام د باران اورلو ، د نباتاتو راشنه کولو مسئوليت لري .

اسرافيل عليه السلام به د قيامت په ورځ په صور (شپيلۍ) کي پوکي .

حضرت عزرائيل عليه السلام د روحونو په اخيستلو مأمور دی .

همدارنګه ځيني فرشتې بيا د جنت او دوږخ څوکيداري په غاړه لري . او ځيني فرشتې بيا د انسانانو د حفاظت لپاره مقرري دي چي «حَفَظه» ورته وايي . او ځيني بيا د انسانانو د عملونو د ليکلو مصروفيت لري چي «کِرامًاکاتِبين» ورته وايي . او ځينو فرشتو بيا د الله تعالى عَرش اخيستی دی .

# اسمانـــــي کـــــتابونه :

پوښتنه (٢١) :

پر اسماني کتابونو د ايمانو راوړلو مطلب څه دی !؟

جواب :

لکه څنګه چي پر الله تعالى ، د هغه پر رسولانو او ملايکو باندي ايمان درلودل ضروري دی ، دغه رنګه پر هغو ټولو کتابونو هم ايمان درلودل ضروري دی کوم چي الله پاک پر خپلو نبيانو نازل کړي دي .

دا ايمان راوړل ضروري دی چي د الله تعالى نازل کړه شوي کتابونه هم حق او رښتيني دي ، نو که يو څوک پر اسماني کتابونو يا پر يوه اسماني کتاب ايمان ونه لري نو هغه کافر دی . لکه چي الله تعالى فرمايي : وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَبِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ (البقره :٤).

پوښتنه (٢٢) :

کوم کوم کتابونه پر کومو کومو پيغمبرانو نازل شوي دي ؟

**جواب :**

له حضرت آدم عليه السلام څخه بيا زموږ ترر سول محمد ﷺ پورې ډېر كتابونه او صحيفې رانازلې شوې دي ، لكه :

تورَات پر حضرت موسى عليه السلام.

زبُور پر حضرت داؤد عليه السلام.

انجيل پر حضرت عيسى عليه السلام.

قرآن كريم پر حضرت محمد ﷺ.

له دې ماسوا نور كوچنې كوچنې كتابونه هم پر انبياوو نازل شوي دي چې هغوى ته «صحيفې» وايي .

مثلا: لس صحيفې پر حضرت آدم عليه السلام ، پنځوس صحيفې پر حضرت شيث عليه السلام. ديرش (۳۰) صحيفې پر حضرت ادريس عليه السلام او (لس يا ديرش) صحيفې پر حضرت ابراهيم عليه السلام.

**پوښتنه (۲۳) :**

ايا دغه كتابونه لكه تورات انجيل وغيره اوس هم له خپلو اصلي تعليماتو سره موجود دي!؟

**جواب :**

څرنګه چې له قرآن كريم څخه علاوه د نورو اسماني كتابونو د حفاظت ذمه الله تعالى نه ده اخيستې ، نو ځكه هغه كتابونه له تحريف (لاس وهنې) څخه خوندي نه شول ، د وخت په تېرېدلو سره خلكو په هغوى كې د خپلې خوښې او خواهشاتو مطابق لاسونه ووهل .

نو ځكه زموږ عقيده ددغو كتابونو په اړه داده چې دا كتابونه الله تعالى پر خپلو انبياوو نازل كړي وو ، وروسته د زمانې په تېرېدلو په دوى كې تحريف وشو ، او د قرآن كريم تر نازلېدو ورسته ددوى پيروي نه ده جائز.

**پوښتنه (۲۴) :**

د اسماني كتابونو پر ضرورت باندې كه رڼا واچوئ !؟

**جواب :**

په دنيا كې دا قاعده او طريقه ده چې د هرراز حكومتولې ، او د حكومت د چارو د انتظام لپاره يو دستور ، لايحه او قانون جوړيږي ، لكه د جرائمو د سزا قانون ، د فوځ او لښكر په اړه قانون ، كورنې ، ټولنيزاو د اقتصاد اړوند قوانين وغيره ..

نو د الله تعالی له لوري هم کوم چي د بادشاهانو باچا دی ، أحكَمُ الحَاكِمين ذات دی ، او ټول عالَم دده مخلوق او مملوک دی ، د خپلو بندګانو لپاره د داسي قوانینو او ضوابطو اړتیا وه ، چي د هغه په پیروي سره بنده ګان د خپل خالق اطاعت پر ځای کړي .

نو له همدې وجي الهي قوانین د انبیاوو په واسطه وقتًا فوقتًا پر امتونو باندي ، د کتاب یا صحیفي په شکل رانازلېدل ، چي په هغه عمل کول پر ټولو واجب و ، تر دې چي زموږ پر خوږ نبي ﷺ آخري کتاب قرآن کریم نازل کړل شو.

## قـــــرآن کریـــــم :

پوښتنه (۲۵) :

د قرآن کریم په اړه اسلامي عقیده څنګه ده؟

جواب :

د قرآن کریم په هکله زموږ عقیده داده چي دا دالله تعالی کلام دی، کوم چي الله پاک پر آخیري نبي حضرت محمد ﷺ د جبرئیل په واسطه ، د (درویشتو ۲۳) کلونو په موده کي لږ لږ نازل کړی دی .

قرآن کریم داسي مُعجزه ده چي تر قیامته هیڅوک هم د هغه په څیر کلام نه سي جوړولای .

قرآن کریم د مخکنیو ټولو اسماني کتابونو أحکام منسوخ کړل .

قرآن کریم تر قیامته د انسانانو لپاره د هدایت لار، دستور العمل او د ژوند ضابطه ده .

په قرآن کریم کي ډېر أحکام اجمالًا (په مختصر ډول) یا تفصیلًا بیان شوي دي ، بیا د هغه تشریح رسول الله ﷺ په خپل قول او عَمل (حدیث او سنت) سره بیان کړې ده .

له قرآن کریم څخه پرته هم ده مبارک د الله تعالی د وَحي مطابق احکام شودلي دي ، ددغه ټولو أحکامو منل او عمل پرې کول لازم او ضروري دي .

په قرآن کریم کي تر قیامته پوري تحریف نه شي کېدای ، ځکه د حفاظت ذمه یې پخپله الله تعالی اخیستې ده ، همدغه وجه ده چي د ۱۴۰۰ کلونو په تېرېدلو سره بیا هم قرآن کریم هماغه ډول موجود دی لکه څنګه چي پر نبي ﷺ نازل شوی و، آن تر «زبر» «زیر» او پیښ» پوري هم هیڅ تغیر نه دی پکي راغلی او نه به راسي ، همدغه وجه ده چي د قرآن کریم له یو سورت ، آیت اولفظ بلکي له یوه حرف څخه یې هم انکار کُفر دی .

پوښتنه (۲۶) : تاسي وویل چي قرآن کریم د ۲۳ کلونو په موده کي نازل شو، حال دا چي موږ اورېدلي چي قرآن کریم په لیلة القدر (د قَدر په یوه شپه) نازل شو ؟

جواب :

دا دواړې خبرې صحیح دي ، ددې تفصیل دادی چې قرآن کریم له «لوحِ مَحفوظ» څخه مکمل اول اسمان ته په یوه وخت کې ، د رمضان د میاشتې په یوه شپه (لیلة القدر) کې نازل سو ، همدغه خبرالله پاک په دغه آیت کې فرمایلې ده چې :«انا انزلناه في لیلة القدر» .

له هغه وروسته بیا له اول اسمان څخه دنیا ته پر نبي کریم ﷺ د ضرورت مطابق لږ لږ د ٢٣ کلونو په زمانه کې نازل شو . لکه چې الله پاک فرمایلي : «وقرآنًا فَرَقناه لِتقرَأه على الناسِ على مُكثٍ ونزّلناه تنزيلا» (بني اسرائیل:١٠٦).

پوښتنه (٢٧) :

ایا قرآن کریم پر نبي ﷺ هم په همدغه ترتیب نازل شوی دی ، په کوم ترتیب چې له موږ سره نن موجود دی ؟

جواب :

د قرآن کریم د نزول (نازلېدو) ترتیب جلا و ، او د لیکلو ترتیب یې جلا دی ، کوم وخت چې نازلېدی په دغه ترتیب نه ولکه اوس چې یې کوم ترتیب دی .

خو د قرآن کریم موجوده ترتیب هم د الله تعالی له لوري سوی دی ، کله چې به یو سورت یا آیت نازلېدی نو جبرئیل علیه السلام به رسول الله ﷺ ته ور ښودی چې دغه سورت یا آیت د فلاني سورت یا آیت وروسته ولیکه ، ده مبارک به هم اصحابو ته په همدغه ترتیب ورلیکی ، چې په دې توګه د قرآن کریم موجوده ترتیب را منځته سو ، او دا هماغه ترتیب دی په کوم ترتیب چې قرآن کریم په لوح محفوظ کې موجود دی .

# أنبيآءِ كرام عَلَيْهِمُ السَّلَامُ :

**پوښتنه (٢٨) :**

نبوت يا رسالت څه ته ويل کيږي :

**جواب :**

دا خبره خو تاسي ته معلومه ده چي الله تعالى د ټولو حاکمانو پر سر حاکم او د ټولو بادشاهانو باچا دى ، او دا هم درته معلومه سوې ده چي الله تعالى په هره زمانه کي ، خپلو بنده ګانو ته (د خپلو أحکامو د وررسولو لپاره) ځيني خاص انسانان انتخاب کړي دي .
دغو خاصو خلګو ته چي بنده ګانو ته د الهي أحکامو کوم مسئوليت ورکول سوى دى دغه مسئوليت او ذمه واري ته نبوت يا رسالت ويل کيږي . او دغو خاصو انسانانو ته نبي او رسول وايي .
څرنګه چي نبي او رسول د الله تعالى خاص او نږدې بنده ګان وي نو ځکه پر دوى ايمان راوړل ، تعظيم او اطاعت يې کول فرض دى ، او د هغوى توهين يا انکار کُفر دى .

**پوښتنه (٢٩) :**

د نبي او رسول تر منځ فرق شته او که دواړه يو دي؟

**جواب :**

هو ! په نبي او رسول کي فرق شته ، نبي د هغه مقدس او معصوم شخص نوم دى چي الله تعالى بنده ګانو ته د خپلو احکامو د رسولو لپاره استولى وي عام له دې که هغه ته کتاب ورکول سوى وي که نه .
او رسول هغه محترم او معصوم هستي ده چي الله تعالى بنده ګانو ته د خپلو احکامو د رسولو لپاره استولى وي او کتاب هم ور کول شوى وي .

**پوښتنه (٣٠) :**

د انبياوو په باره کی اسلامي عقيده څنګه ده ؟

**جواب :**

د هر مومن لپاره ضروري ده چي اجمالًا پر ټولو انبياوو ايمان ولري او د هغوى په باره کي دا عقيده ولري چي :

- انبياء د الله تعالى مُقرب بنده ګان دي چي د نبوت او رسالت لپاره يې انتخاب کړي دي.
- ټول انبياء په صِدق ، امانت ، علم او حکمت کي تر ټول مخلوق لوړ دي .

- ټول انبياء له هر راز صغيره او کبيره ګناهونو څخه پاک او معصوم دي ، هم مخکې تر نبوت او هم وروسته تر نبوت .

او ددې وجه دا ده چې چې نبوت او رسالت يو داسې جليلُ القدره منصب او وظيفه ده چې د ټولو انسانانو رهنُمايي ترهغه پورې ترلې ده ، او الله تعالی د هرنبي امت ته حکم کړی دی چې هغوی د خپل نبي د هر فعل او قول پيروي وکړي . او دا خو ښکاره ده چې الله تعالی د ګناه يا ناخوښه کار د پيروي حکم نه کوي ، نو ځکه دا لازمه شوه چې ټول انبياء دي له ګناه څخه پاک او معصوم وي .

- ټول انبياء بَشر او پاک ترينه انسانان دي ، ددوی هستياني له ملايکو څخه جلا دي ، څرنګه چې دوی انسانان دي نو ځکه بَشري تقاضاوي يې هم پوره کولې ، يعني ښځې يې لرلې ، اولادونه يې وو ، خوراک او څښاک يې کاوه .
- لکه څنګه چې پرټولو انبياوو او پرهغو کتابونو چې پردوی نازل شوي دي اجمالًا ايمان درلودل فرض دی ، دغه رنګه پردې خبره هم ايمان راوړل ضرور دي چې ټولو انبياوو د تبليغ او دَعوت فريضه په مکمله او ښه توګه انجام کړې ده ، او په هغه کې يې هيڅ کوتاهي نه ده کړې .

پوښتنه (٣١) :

الله تعالی په دنيا کې څومره پيغمبران را استولي دي ؟

جواب :

له آدم عليه السلام څخه نيولې بيا زموږ ترنبي محمد ﷺ پورې يې بېخي ډېر پيغمبران را استولي دي ، چې د ځينو يادونه په قرآن کريم او حديثونو کې هم شوې ده .

او په ځينو رواياتو کې که څه هم د انبياوو شمېر يو لک او څلرويشت زره او په ځينو کې دوه لکه او څلرويشت زره يا دشوی دی ، خوبهتردادی چې د انبياوو د شمېر اصلي علم الله تعالی ته وسپارل شي ، او (اجمالا) پرټولو انبياوو ايمان ودرلودل شي . (شرح فقه الأکبر لملاعلي القاري رحمه الله).

# خاتم المرسلين محمد ﷺ :

پوښتنه (۳۲) :
درسول الله ﷺ په هکله څنګه عيده ساتل ضروري دي!؟
جواب :
د نبي ﷺ په هکله د هرمسلمان لپاره لاندي عقيدې ساتل ضروري دي :
(۱) : محمد ﷺ د انبياوو اورسولانو سَيد اوسرداردی ، پرهغه له ايمان راوړلو او د هغه پر نبوت له شاهدي پرته ايمان هيڅ حيثيت نه لري .
(۲) : دقيامت په سخته ورځ چي ټول مخلوق ترويري اوهيبت لاندي وي ، اوانبياء د شفاعت درخواستونه رَد کړي او معذرت وغواړي ، نو نبي ﷺ به شفاعت کوي ، چي له هغه وروسته به د خلګو حساب اوکتاب پيل شي .
(۳) : دده امت به ترټولو امتونو لومړی جنت ته داخليږي .
(۴) : د قيامت په ورځ به «لواءُ الحَمد» دده مبارک په لاس کي وي .
(۵) : په مقامِ محمود اوحوضِ کوثرسره به همدی مبارک ونازول شي .
(۶) : له الله تعالی وروسته ترټول مخلوق دَی مبارک غوره ، افضل او الله تعالی ته خوښ او مقبول دی ، په بهتري کی د مخلوق هيڅ فرد له هغه سره برابرخوهلته پريږده ورنژدې کېدلای لا نه شي.
(۷) : درسالت عاموالی : دَی مبارک ترقيامته د ټولو انسانانو او د هري زماني لپاره رسول دی.
(۸) : ختمِ نبوت : د انبياوو اورسولانو سلسله پر ده مبارک پای ته ورسېده ، ترده وروسته هيڅ نبي اورسول نه راځي ، الله تعالی فرمايي : (ولكن رسولَ اللهِ وخاتَمَ النبيين . الأحزاب : ۴۰).
ددغه آيت له مخي که هرڅوک له ختمِ نبوت څخه منکر شي هغه کافر دی . تر نبي ﷺ وروسته ډېرو د نبوت دعوې وکړې لکه مُسيلمه کذّاب او غلام أحمد قادياني (لعنة الله عليهم) چي خپله هم ګمراهان شول اونور يې هم ګمراهان کړل.
(۹) : رحمت او هدايت : الله تعالی دَی مبارک د ټول مخلوق لپاره رحمت او د هدايت باعث په کرځولو سره رااستولی دی .
(۱۰) : وجوبِ اطاعت : د نبي ﷺ اطاعت پرهرشخص فرض دی ، دده په اطاعت کي د الله اطاعت اونافرماني يې د الله نافرماني ده .

(۱۱) : محبت : د خپل مور ، پلار ، اولاد ، وروڼو او خویندو ، مال او دولت د ټولو په مقابل کې ، تر ټولو زیات له ده مبارک سره (عقلي) محبت ساتل د ایمان تقاضا ده .
(۱۲) : د درود کثرَت : پر ده مبارک په کثرَت سره درود ویل مُستحب او بې اندازې لوی عبادت دی.
(۱۳) : بشریَت : نبي ﷺ د الله تعالی بنده ، کامل ترین انسان او پاکترین بَشر دی . دَی مبارک فرشته یا نور نه دی ، بلکې د آدم عليه السلام د پاتي اولاد په څیر دَی هم د هغه له اولاد څخه دی. همدا د أهل السنت والجماعت عقیده ده .
ځینې د أهل السنت والجماعت ددغې عقیدې پر خلاف نبي ﷺ د ذات له مخې بشر نه ، بلکې نور بولي (العیاذ بالله) ددوی دغه عقیده له قرآن او سنت له دواړو مخالفه ده ، لکه چې په قرآن کریم کې فرمایل شوي دي :
قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِثْلُكُمْ يُوحَى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَهُكُمْ إِلَهٌ وَاحِدٌ (الكهف:۱۱۰).
یعني اې محمده ! دوی ته ووایه چې زه ستاسي په ډول انسان یم ، ماته وَحي کیږي چې ستاسي مَعبود یو دی .
په یو بل صحیح حدیث کې د سجده سهود بیان په جریان کې نبي ﷺ فرمایلي :
انما أنا بَشرٌ مثلکم أنسی کما تنسون (صحیح البخاري : کتاب الصلاة).
یعني زه همدا ستاسي په څیر انسان یم ، لکه څنګه چې تاسو هېره لارئ زما څخه هم هېریږي.
نو له قرآن او حدیث څخه ثابته شوه چې زموږ نبي ﷺ انسان و ، او تر ټولو په لوړ منصب چې د نبوت او رسالت منصب دی نازول شوی و.
دده مبارک په اړه دا عقیده ساتل چې دَی بشر نه بلکې نور دی د جِهل عقیده ده ، دوی دا فکر کوي چې په دې کې دده مبارک کمال دی چې نور وبلل سي ، خو که معمولي غور وسي نو مالومیږي چې په جسماني لحاظ بشر کېدل دده مبارک لپاره انتهایي لوی کمال دی .
(۱۴) : مِعراج :
زموږ دا عقیده ده چې الله تعالی زموږ نبي ﷺ په بیداري (ویښه) له جَسمِ أطهر سره ، له مسجد حرام څخه تر مسجد اقصی ، او له مسجد اقصی څخه د اوو اسمانونو په سفر بوتلی . او په همدغه شپه یې بیرته مکه مکرمې ته تشریف راووړ، ده مبارک دغه سفر د جنت پریوه سورلې «بُراق» باندې وکړ، چې ددغه براق یو قدم هلته رسېدی چیرې چې د سترګو نظر رسېدی .

(۱۵) : حياتُ النبي ﷺ :

د اهل السنت والجماعت اجماعي او متفقه عقيده ده چي زموږ نبي ﷺ په قبر کي ژوندی دی ، دده مبارک دغه ژوند د دنيا د ژوند په څير دی (برزخي ژوند نه دی کوم چي ټولو انسانانو ته په قبر کي حاصليږي) هو په دغه ژوند کي دَی مکلف نه دی . زموږ دغه عقيده د ټولو انبياوو او شهيدانو په باره کی هم ده .

له دې سره دا عقيده ساتل هم ضرور ده چي پر ټولو انبياوو زموږ د نبي په شمول په دې دنيا کي مرګ راغلی دی ، او ټولو د مرګ خوند څکلی دی .

(۱۶) : عِلمُ الأولين والآخرين :

رسول الله ﷺ ته تر ټول مخلوق زيات علوم عطا شوي وو ، په مخلوق کي هيڅوک هم د هغه و علم ته نه شي رسېدلای .

البته له دې خبرې څخه دا نه لازميږي چي هغه مبارک ته دې د هرې زماني هره واقعه او پيښه معلومه وي ، او د هغه له مشاهدې څخه د يو واقعې غائبوالی دده مبارک په علمي وُسعت او علمي أفضليت کي نقصان هم نه راولي ، لکه حضرت سليمان عليه السلام چي په هغه څه نه و خبر کوم چي هُدهُد پرې خبر شو ، خو دا د حضرت سليمان عليه السلام په أفضليت او زياد علم لرلو کي هيڅ نقصان نه راووست .

(۱۷) دده مبارک د اصحابو فضيلت :

دده مبارک أمت تر ټولو أمتونو بهتر ، او د هغه أصحاب د ټولو أنبياوو تر اصحابو بهتر دي ، دده مبارک په أمت کي تر ټولو أفضل حضرت أبوبکر صديق رضي الله عنه دی ، بيا په ترتيب حضرت عمر فاروق، حضرت عثمان غني ، حضرت علي مرتضى رضي الله عنهم دي.

او دا هم زموږ عقيده ده چي تر نبي ﷺ وروسته حضرت ابوبکر تر ټولو د خلافت حقدار و ، ځکه چي په أمت کي هغه تر ټولو أفضل و ، او له هغه وروسته بالترتيب حضرت عمر ، بيا حضرت عثمان او بيا حضرت علي د خلافت حقداران وو .

دغه رنګه د ازواج مطهراتو (رضي الله عنهنّ) لپاره کوم چي د ټول امت مندي او له هره عيبه پاکي دي ، د الله تعالی د رضا او خوشحالي دعا کول پر هر مسلمان ددوی حق دی .

په ازواجو مُطهراتو کي تر ټولو افضله حضرت خديجه بنت خُوَيلِد رضي الله عنها او حضرت عائشه (رضي الله عنها) دي .

مور د ټولو اصحابو رضي الله عنهم سره محبت او عقیدت د ایمان تقاضا بولو ، د هغوی نېکیاني بیانول ، د هغوی لپاره له الله تعالی څخه د رحمت او بخښش دعاوي کول د ایمان خاصه ګڼو ، د هغوی په شان کي ګستاخي کول یا نالایقه خبره کول ګمراهي بولو.

د اصحابو تر منځ چي کوم اختلافات رامنځته شوي دي د هغوی په اړه چوپتیا د سلامتي لار ده ، او په دغو اختلافاتو کي بحث او پرېکړي کول د ایمان د سالمیت لپاره ډېر خطرناک عمل دی .

حضرت امیر معاویه رضي الله عنه مور په مسلمانو خلفاوو کي شمارو ، او د هغه د فضائلو او مناقبو اقرار کوو ، او له دي سره سره له حضرت علي رضي الله عنه سره دده مخالفت پر اجتهادي غلطي حمل کوو .

**پوښتنه (۳۳) :**

ایا رسول الله ﷺ ته علم غیب حاصل و !؟

**جواب :**

علم غیب یوازي د الله تعالی صفتِ کمال دی ، دا صفت هیڅ مخلوق ته نه دی حاصل ، که یو څوک (ببله تاویله) دغه صفت د یو مخلوق لپاره ومني نو هغه مشرک او کافر ګرځي ، لکه چي الله تعالی فرمایلی : «ولله غیبُ السماوات والأرض».

او په بل ځای کي فرمایي : «وعندَه مفاتحُ الغیبِ لایعلمها الا هو» .

او په بل ځای کي فرمایي : قُلْ لَا أَقُولُ لَكُمْ عِنْدِي خَزَائِنُ اللَّهِ وَلَا أَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَا أَقُولُ لَكُمْ إِنِّي مَلَكٌ» (الأنعام:۵۰).

یعني اې نبي ! ته ووایه چي زه تاسو داسي نه وایم چي له ما سره د الله تعالی خزانې دي ، یا دا چي زه په غیبو عالم یم ، او نه زه تاسي ته وایم چي زه فرشته یم .

پل بل ځای کي الله تعالی رسول الله ﷺ ته فرمایلي چی ووایه : وَلَوْ كُنْتُ أَعْلَمُ الْغَيْبَ لَاسْتَكْثَرْتُ مِنَ الْخَيْرِ وَمَا مَسَّنِيَ السُّوءُ (الأعراف:۱۸۸) .

یعني (ووایه) که زه غیب دان (په غیبو خبر) وای ، نو ډېري فایدې به مي تر لاسه کړي وای ، او ماته به هیڅ نقصان نه رسېدلای .

نو معلومه سوه چي رسول الله ﷺ چي تر ټولو مخلوق په علم کي بالاتر دی ، هغه هم په غیبو نه و عالم ، ځکه چي عالمُ الغیب هغه دی چي ببله دې چي څوک یې خبر کړي ده ته پخپله د غیب ټولي خبري مالومیږي ، یعنی دغه علم یې ذاتي وي .

رسول الله ﷺ چي امت ته ځيني غيبي خبري ښودلي دي د هغوی خبر الله تعالی ده ته ورکړی دی ، د هر غيب علم ده ته نه و ، لکه په احاديثو کي چي ډيري داسي واقعاتي راغلي دي ، چي په هغوی کي يوه کيسه پر حضرت عائشې د تهمت لګېدلو ده .

نو ځکه د رسول الله ﷺ لپاره د «عالمُ الغيب» لقب استعمالول جائز نه دی ، او په دې کي د شِرک شبه شته .

# مُــعــجــزې

پوښتنه (۳۴) :

معجزه څه ته وایي ؟!

جواب :

د یو نبي یا رسول پرلاس (د خپل نبوت د حق ثابتولو لپاره) داسي عجیب او غریب کارښکاره کېدل چي هغه د معمول خلاف، او بېله ظاهري اسبابو وي معجزه بلل کیږي .

پوښتنه (۳۵) :

ایا ټولو پیغمبرانو ته معجزې ورکول شوي دي ؟!

جواب :

هو ! الله تعالی چي څوک پیغمبر کرځولی هغه ته یې معجزې هم ورکړي دي ، ترڅو خلکو ته د هغه پیغمبروالی په واضح ډول ثابت شي .

لکه : پرابراهیم عليه السلام د اور سوړوالی . د حضرت صالح عليه السلام لپاره له غره څخه د حاملې اوښې پیدا کېدل . د حضرت داود عليه السلام لپاره د موم په څېر د اوسپنې نرمېدل . د حضرت سلیمان عليه السلام لپاره د پېریانو او بادونو مسخر کېدل . د حضرت موسی عليه السلام لپاره د لکړې څخه لوی مار جوړېدل ، او په بغل کې د لاس په اچولو او بېرته راایستلو سره د لاس ځلېدل . د حضرت عیسی عليه السلام د الله په حکم مړي راژوندي کول ، پر مورزاده ړوند دلاس په تېرولو سره بېنا کېدل وغیره وغیره ....

پوښتنه (۳۵) :

زموږ نبي ﷺ ته الله تعالی کومي کومي معجزې ورکړي وې!؟

جواب :

ډېري معجزې یې ورکړي وې ، چي ځیني یې په لاندي ډول دي :

(۱) : شقُّ القمر:

کله چي کفارو ده مبارک ته وویل چي که تا سپوږمی دوې ټوټې کړه نو موږ ایمان راوړو ، ده مبارک هم الله تعالی ته خواست وکړ او بیا یې د سپوږمی طرف ته اشاره وفرمایله ، هغه دوې ټکړې شوه . مشرکانو یقین نه کاوه په حیرانتیا یې پر سترګو ټوکر موښی او ورته کتل به یې چي یې ښه ووینې .

د مازدیګر او ماښام ترمنځ چې څومره وخت دی دومره وخت سپوږمۍ پردغه حال وه ، او بیا بیرته خپل حالت ته راغله .

مشرکانو وویل : تا پرموږ جادو کړی دی ، موږ له راتلونکو مسافرو څخه پوښتنه کوو که هغوی هم ددې خبرې تصدیق وکړ نو بیا یې منو . کله چې مسافرین راغلل نو هغوی هم د سپوږمۍ د حادثې مشاهده بیان کړه ، خو پردې سربېره مشرکانو دا کارجادو وباله او ایمان یې رانه وړی . (القمر:١/٢ . صحیح البخاري، سنن الترمذي ).

(٢) : قرآن کریم :

رسول الله ﷺ ته ترټولو لویه او ترقیامته پاتې معجزه قران کریم دی ، داسې عظیم الشانه معجزه مخکې هیڅ پیغمبرته نه وه ورکول شوې .

قرآن کریم داسې عظیم الشانه علمي معجزه ده چې د قرآن په څیر بلیغ او فصیح کلام نه مخکې چا جوړ کړی و او نه به یې ترقیامته څوک جوړ کړای شي ، نه په انسانانو کې ددې طاقت شته او نه په پېریانو کې (بني اسرائیل :٨٨) .

(٣) : له ګوتو مبارکو څخه د اوبو بهېدل :

د صلحِ حدیبې پرمهال یو ځل اصحاب چې ١٥٠٠ شاوخوا و، د اوبو د کمې سره مخ شول ، اورسول الله ﷺ ته یې د اوبو د کموالي شکایت وکړ، دلته نژدې یو لوښی پروت ورسول الله ﷺ له هغه څخه اودس وکړ، او بیا یې په هغه ظرف (لوښي) کې لاس مبارک واچاوه ، نو دده مبارک دګوتو له منځ څخه د اوبو شورهارپیل شو، تردې چې ټولو اصحابو اوبه ترې وڅښلې او اودسونه یې هم وکړل .

حضرت جابررضي الله عنه فرمایلي : که موږ دغه ورځ یو لک کسان هم وای نو هم به مو دغه اوبه بس شوې وای . (صحیح البخاري).

(٤) : یوې درختې دده مبارک حُکم منل :

یو ځل رسول الله ﷺ ته د قضاء حاجت ضرورت پیدا شو، او دلته نژدې مناسب ځای نه و ، دشیلې پرغاړه دوې درختې ولاړې وې ، ده مبارک د یوې درختې ښاخ ونیو او ورته وې فرمایل: د الله په حکم زما خبرومنه ، هغه درخته له ده مبارک سره روانه شوه ، لکه یو تابعدار اوښ ، او همداسې دَی مبارک دوهمې درختې ته راغلی او د هغې ښاخ یې ونیو ورته وې ویل چې د الله تعالی په حکم زما خبرومنه ، کله چې دواړې درختې سره یو ځای شوې نو ده مبارک قضاء حاجت پوره کړ.

له دې وروسته دواړې درختې سره بېل شوې او خپلو ځايونو ته ولاړې . (صحيح مسلم عن جابر).

(٥) : د غرونو سلامي :

حضرت علي رضي الله عنه فرمايلي ، چې زه درسول الله ﷺ سره په مکه مکرمه کې وم ، او يو وارد مکې اطرافوته راووتلو ، نوکوم غريا درخته چې به مخې راتله داسې به يې ويل : السلام عليک يارسول الله ! (سنن الترمذي ، دارمي) .

له دې پرته هم بې شمېره معجزې وې چې د احاديثو په کتابونو کې ذکر دي ، او په ښکاره او واضح ډول د رسول الله ﷺ د نبوت تائيد کوي .

## مرګ او عَالمِ بَرزَخ :

پوښتنه (٣۶) :

د مرګ حقيقت څه دی !؟

جواب :

مرګ د الله تعالی مخلوق دی ، کله چې پريو روح لرونکي شي مرګ راشي د هغه د جسم او روح ترمنځ رابطه له منځه وړي.

مرګ داسې حقيقت دی چې هيڅ ملحد ، کافر او مشرک هم له هغه څخه انکارنه شي کولای.

هرروح لرونکي شي ته به ضرورمرګ راځي ، ترمرګ وروسته مړی ددنيا له عَالم څخه وعَالمِ بَرزخ ته انتقالېږي .

پوښتنه (٣٧) :

د مرګ په اړه اسلامي عقيده څه ده !؟

جواب :

د مرګ په باره کې زموږ عقيده داده چې د هر چا لپاره الله تعالی يو مقرر وخت ټاکلی دی ، هيچا ته هم مرګ تر ټاکلي وخت مخکې يا وروسته نه راځي ، او هيڅوک هم نه شي ترې خلاصېدای .

مرګ د مومن لپاره راحت او نعمت دی ، او دکافر او نافرمان لپاره د عذاب او عقاب شروع ده .

د قيامت په ورځ چې کله جنتيان جنت او دوږخيان دوږخ ته ولاړ شي ، نو مرګ به د يو پسه (مَږ) په شکل راوستل شي د جنت او جهنم ترمنځ به حلال شي ، بيا به جنتيان همېشه په جنت او دوږخيان همېشه په دوږخ کې وي (الله دی موږ له جنتيانووګرځوي آمين) .

پوښتنه (۳۸) :

بَرزَخ څه دی ؟

جواب :

هر انسان تر پیدایښت وروسته پر دریو دورو (زمانو) تېرېږي :

۱) : یوه زمانه له پیدایښته بیا تر مرګه ، دا عَالمِ دُنیا بولي .

۲) : له مرګ وروسته بیا د قیامت تر راتلو (دا عَالمِ بَرزَخ یا د برزَخ دَور دی ، عام له دې که هغه مړی په قبر کې وي او که د یو حیوان په نس کې ، یا د دریاب په تل کې او یا د بادونو پر اوړو ، مطلب هرځای چې وي هغه دده لپاره عالَمِ برزخ دی) .

۳) : له قیامت جوړېدلو وروسته بیا تل ترتله ، دا دارُالبقآء یا دَارِآخرَت دی .

پوښتنه (۳۹) :

ترمرګ وروسته په برزخ کې له انسان سره کومه معامله کیږي؟

جواب :

ترمرګ وروسته په عالم برزخ کې د مومن روح ته بشارتونه (زیري) اورول کیږي ، او په انتهایي اکرام او عزت اوم (۷) اسمان ته وړل کیږي ، او د الله تعالی په حکم یې نوم په عِلِّیِّین کې لیکل کیږی .

او که کافروي نو د هغه روح په ډېر تکلیف د هغه له بدنه را ایستل کیږي ، او په ډېره بدبویه جامه کې به وپیچل سي ، او اسمانونو ته به یووړل سي ، خو د اسمان دروازې به نه ورته خلاصیږي ، بیا به د الله تعالی په حکم ترتولو لاندې ځمکه کې غورځول کیږي .

بیا چې کله مومن یا کافر دفن شي ، نو د هغه روح بیرته ورته راوګرځي ، او مُنکَر او نکیر پوښتني ترې کوي ، که مړی مومن و ، نو سم جوابونه به ورکړي ، او که کافر و ، نو په جواب کې به لاعلمي ښکاره کړي .

له دې سوال وروسته به د مومن لپاره د جنت فرش وغوړول شي او قبر به د سترګو تر لیده ورته پراخ شي .

او د کافر لپاره به د اور فرش وغوړول شي ، او د جهنم دروازه به ورته پرانستل شي چې له هغې دروازې به ده ته د جهنم ګرمي رسیږي ، او قبر به یې دومره تنګ شي چې دواړي پوښتۍ به یې یو په بله کې سرا ننوځي .

د ټول اهل السنت والجماعت عقیده ده چې د قبر عذاب او راحَت حق دی ، نو د مومنانو قبرونه به له راحت،خوښې او ارام څخه ډک وي (الله دې مو له دوی څخه وګرځوي). او د کافرانو ، منافقینو او ګنهګارانو قبرونه به د عذاب او تکلیفونو ښکاروي (الله دې مو پخپل فضل ترې وساتي) .

پوښتنه (۴۰) :

مُنکر او نکیر څوک دی ؟

جواب :

منکر او نکیر دوې فرشتې دي چې په برزخ کې به درې ډوله پوښتنې کوي :

ستا رب څوک دی ؟

ته په کوم دین یې ؟

ستا رسول څوک دی ؟

د اهل السنت والجماعت دا عقیده ده چې کله ملایکې له مړي څخه دغه پوښتنې کوي نو ددغه مړي جسم ته دده روح راګرځي .

# قيامت او علاماتِ صُغرى :

پوښتنه (۳۷) :

د قيامت حقيقت څه دى !؟

جواب :

کله چې په دې دنيا کې هيڅ د الله تعالی يادوونکی پاتې نه شي ، کفر، شرک او نافرماني هرلور وغوړيږي ، نو د الله تعالی په حکم به اسرافيل عليه السلام «صور» (شپېلى) پوه کې ، چې د هغه د هيبت ، او سخت اوازله وجې به ټول روح لرونکي مړه شي .

ځمکه به رېزه رېزه شي .

غرونه به د وړيو د ذرو په څېرپه هوا اوذره ذره شي.

مطلب ټوله دنيا به فنا شي ، اوله الله تعالی پرته به هيڅوک هم نه شي پاتې .

بيا به دوهم ځل «صور» پوه کړل شي ، نوټول به د حساب او کتاب لپاره دوهم ځل راژوندي شي .

د همدې پورته حالاتو نوم قيامت ، حشر او نشر دى .

پوښتنه (۳۸) :

قيامت به کله راځي !؟

جواب :

د قيامت خبر انبياوو خپلو امتونو ته کړى دى ، خو د الله تعالی آخري پيغمبر محمد ﷺ دا وښودله چې قيامت نژدې دى ، اوزه آخري رسول يم .

خو دا چې قيامت به کله راځي ؟ ددې سم تاريخ خو هلته پرېږده کال او صدى (سليزه) يې لا د الله تعالی پرته چاته نه ده مالومه . دا يو داسې رازدى چې د الله تعالی پرته فرشتې يا نبي ته هم نه دى مالوم .

هو الله تعالی د رسول الله ﷺ په ذريعه د قيامت نښې نښانې مونږ ته راښودلې دي ، په هغوى کې اکثره ښکاره شوي دي ، يو څو غټې علامې يې پاتې دي .

پوښتنه (۳۹) :

د قيامت علامې څه دي ؟

جواب : د قيامت علامې دوه ډوله دي : «علاماتِ صُغرى» يعني کوچنۍ علامې ، او بل «علاماتِ کُبرى» يعني غټې علامې .

علاماتِ صُغرى (کوچنۍ نښانې) : یعني هغه علامې چې ښکاره سوي خو دي ، البته پای ته نه دي رسېدلي ، ورځ په ورځ په هغوی کي زیادت راځي او ښکاره کیږي به ، تر هغه چې لويي علامې ښکاره سي . (الاشاعة للبرزنجي ص۴) .

وړې علامې ډیري دي چې ځیني به یې دلته ذکر کړو ، رسول الله ﷺ وفرمایل چې تر قیامت مخکي به دغه شپږ (۶) نښې ښکاره شي :

(۱) زما وفات .

(۲) : د بیت المقدس فتح .

(۳) : په مسلمانانو کي د یو وبايي ناروغي خپرېدل .

(۴) : د مال دومره زیاتوالی چې خلک به سل دیناره هم هیڅ نه ګڼي .

(۵) : د عربو په مُلک کي کور په کور د فتنې راتلل .

(۶) : د مسلمانانو او عیسایانو تر منځ صلح ، او بیا د عیسایانو له لوري صلح ماتول . (صحیح البخاري).

په دغو پورتنیو نښانو کي پنځه ښکاره شوي دي ، رسول الله ﷺ وفات شو ، د حضرت عمر په زمانه کي بیتُ المقدس فتحه شو ، د حضرت عمر د خلافت پر مهال د مسلمانانو په لښکر کي د عَمواس پر سیمه داسي «طاعون» او وباخپره شوه چې په دریو ورځو کي ۱۳۰۰۰ مسلمانان وفات شول . او څلورمه او پنځمه نښانه د حضرت عثمان د خلافت پر مهال ښکاره شوه ، چې د مسلمانانو لاس ته بې شمېره مال او دولت ورغلی .

په یو بل حدیث کي راغلي چې پر خلکو به داسي زمانه راشي چې پردین د ټینګېدونکي مثال به د هغه چا په څیر وي چا چې په خپل لاس کي د اور سکروټه نیولې وي (سنن الترمذي).

تجارت به ډېر شي ، تردې چې ښځه به له خاوند سره په تجارت کي شرکت او مرسته کوي.

له خپلوانو سره به قطع تعلق ډېر شي .

د قلم او لیک رواج به زیات شي .

د دروا غو شاهدان به ډېر شي . (أحمد).

د قبیلو او قومونو مشران به منافقین ، رزیل ترین او فاسقان خلک وي .

تعلیم او زده کړه به یواځي د دنیا لپاره وي .

د خپلوانو حقوق به پایمال شي ، خو: له پردیو سره به بیا ښه سلوک کیږي .

✍د ښځې اطاعت او د والدينو نافرماني به کيږي .

✍په مسجدونو کې به اوازونه پورته کيږي (الترمذي).

✍سلام به يوازې شناخته ته اچول کيږي .

✍کوچيان او صحرايان (دکمې درجې خلک) به د فخر او نوم لپاره لوړ لوړ عمارتونه جوړ کړي.

✍د شرابو نوم به نبيذ ، د سود نوم تجارت ، درشوت نوم هِديه کېښودل شي او حلال به بلل کيږي.

✍ښځې به له ښځو ، او نارينه به له نارينه سره واده کوي .

✍ښځې به دومره نازکې جامې اغوندي چې لوڅې به په نظر راځي ، سرونه به يې د «بُختي» اوښانو د «کومې» په ډول لوړ وي ، خپله به هم د خلکو طرف ته ميلان کوي او خلک به هم ځانونو ته جلبوي .

خلاصه دا چې علاماتِ صُغرى نورې هم بيخي ډيرې دي ، د احاديثو په کتابونو کې ليکلې دي ، ددغه ټولو خبر رسول الله ﷺ په داسې زمانه کې اصحابو ته ورکړی و چې هغه وخت يې تصور هم مشکل و ، خو نن يې ټول خلک په خپلو سترګوويني .

# قيامت او علاماتِ کُبرىٰ :

پوښتنه (۳۸) :

د قيامت لويې علامې څه دي !؟

جواب :

د قيامت غټې علامې په لاندې ډول دي :

(۱) : ظهورِ مَهدِيّ :

د مسلمانانو اخيرې امير به امام مَهدي (رضي الله عنه ) وي ، دده د ښکاره کېدو هماغه وخت دی کوم وخت چې به دجال ښکاره کيږي .

امام مَهدي به درسول الله ﷺ له اولاد څخه وي ، نوم به يې محمد او د پلار نوم عبدالله وي.

لوړ قد ، مضبوط بدن او رنګ به يې سُرخې ته مائل ، پراخ مخ ، او پزه به يې نرۍ او جګه وي.

په ژبه کې به لږ څه بنديزي ، کله چې يې د ژبې لُکنت زيات شي نو پر ورنونو به لاسونه ټکوي .

امام مَهدي به په څلويښت کلنۍ کې ښکاره شي او تر اوو يا اتو کلونو پورې به حيات وي .

(۲) : د دجال ښکاره کېدل :

دجال به يو دروغجن شخص وي ، راسته سترګه به يې ړنده وي ، وربښتان به يې د حبشيانو په څېر وي ، پرتندي به يې (ک ف ر) ليکلی وي.

يو غټ خَربه دده د سپرېدا لپاره وي چي رنګ به يې تک سپين وي ، ددوو غوږونو ترمنځ به يې ۷۰ ګزه فاصله وي ، رفتاربه يې د هوا او وريځي په ډول تېزوي .

دجال به د عراق او شام ترمنځ ښکاره شي .

لومړی به د نبوت دعوه وکړي ، او وروسته به د خدايي دعوېدار شي .

له هغه سره به اور وي ، چي دَی به جهنم ورته وايي ، او يو باغ به ورسره وي ، هغه ته به جنت وايي ، خو حقيقت به ددې برعکس وي .

له خپل لښکر سره به پر ټوله مځکه وګرځي او فساد به خپور کړي ، چي څوک يې خبرومني په هغه به د خپل جعلي جنت ننداره وکړي ، او چي څوک يې خبر نه مني هغه به خپل جهنم ته اچوي ، څوک چي دده په اور کي ولوېدی ، د هغه لپاره اجر او ثواب يقيني او ګناوي به يې معاف کړل شي .

په همدې ګرځېدلو او فساد خپرولو کي به مکې ته ورسيږي ، خو د فرشتو د حفاظت له وجي به دَی د مکې مکرمې حدودو ته نه شي داخلېدای .

دلته چي ناکام شي نو د مدينې منورې لور ته به حرکت وکړي ، له جبلِ أحُد سره به پړاو واچوي ، خو مدينې منورې ته به نه شي دا خلېدای ، ځکه هلته به هم ملايکه د حفاظت لپاره ولاړې وي .

بيا به شام ته ولاړ شي او د فلسطين يو ښار ته به ورسيږي ، او مسلمانان به د حضرت امام مهدي په قيادت کي د بيت المقدس پر يو غره باندي محاصره شي .

(۳) : د عيسى عليه السلام را کښته کېدل :

کله چي محاصره اوږده شي ، نو امام مهدي به له دجال سره د جنګ کولو فيصله وکړي ، د جنګ لپاره به صفونه تيار شي او دواړه لوري به جنګ ته اماده شي .

په همدې دوران کي به مسلمانان د سهار د لمانځه لپاره ولاړوي او امام مهدي به امامت ته ورمخته شي ، چي حضرت عيسى عليه السلام به د دِمشق جامع مسجد پر شرقي مناره په داسي حال کي له اسمانه راکښته شي ، چي خپل دواړه لاسونه به يې د دوو ملايکو پر اوږو نيولي وي .

او د امام مهدي په امامت کي به د سهارلمونځ ادا کړي .

د حضرت عيسى عليه السلام حُليه او شكل:

د حضرت عيسى عليه السلام قد درميانه ، رنګ سور او سپين ، وريښتان به يې تر اوږو پوري سيده صاف او ځليدونکي وي لکه تر غسل وروسته چي څرنګه وي . په بدن به يې خام ژړ رنګه دوې جامې وي .

خلاصه دا چي حضرت عيسى عليه السلام به د لاس په اشاره وفرمايي چي زما او د دجال له منځه ليري شئ ، د ده په ساه کي به دومره تاثيروي چي کوم کافربانديي د هغه هوا ولګيږي مړکيږي به ، او تر کومه ځايه چي دده د سترګو ليد رسيږي هلته به دده ساه هم رسيږي .

دجال چي حضرت عيسى عليه السلام ووينې نو داسي به ويليږي لکه په اوبو کي مالګه ، د تيښتې هڅه به کوي ، خو حضرت عيسى عليه السلام به يې له تعاقب وروسته په «بابِ لُد» کي قتل کړي (باب لُد په دمشق [شام] کي يوه سيمه ده) .

ددجال له قتل وروسته به مسلمانان د هغه لښکرلټوي اووژني به يې ، هيڅ يهودي به د پناه ځای نه لري ، تردې چي که تريوې درختي يا ډبري شاته پټ شي نو هماغه درخته او ډبره به ناري کړي چي کافردی .

له دې وروسته به خلک د مځکي پر مخ د امن ، ارام او سکون ژوند پيل کړي ، او امام مهدي رضي الله عنه به وفات شي .

(۴) ياجوج او ماجوج :

يوه ورځ به حضرت عيسى عليه السلام ته د الله له لوري حکم وسي چي مسلمانان دي کوهِ طور ته بوځي ، حضرت عيسى به همداسي وکړي .

له هغه وروسته به د ياجوج او ماجوج ديوال مات شي ، او له خپلي سيمي څخه به راووځي پر مځکه به تباهي جوړه کړي ، پر کومو اوبو چي به تيريږي هغه به په چښلو سره ختموي .

پوښتنه (۳۹) :

ياجوج او ماجوج څوک دي ؟!

جواب :

ياجوج او ماجوج د يو فسادي قوم نوم دی ، دوی د يافث بن نوح له نسل څخه دي .

ذوالقرنين ددوی د لوټ او ظلم د مخنيوي لپاره حکم وکړچي اوسپنيزي تختې راوړئ ، بيا يې ددوو غرونو ترمنځ کندَو ډک کړ (کومه چي ددوی لاروه) بيا يې خلکو ته وويل چي اوس اور په

یوه کولوبل کړئ ، تردې چې دغه د اوسپنې دیوال د اور په څیر سور شو ، بیا یې وویل چې راوړئ اوس پردې باندې ویلې کړې مِس وځښوم . (الکهف :۹۶).
دا مضبوط دیوال تراوسه هم ولاړدی ، قیامت ته نژدې به دالله په حکم دا دیوال ونړیږي .
مطلب دا قوم به د دیوال له نړېدلو وروسته پرځمکه وغوړیږي او سخته تباهي او بربادي به جوړه کړي ، اخیربه حضرت عیسی عليه السلام د یاجوج او ماجوج لپاره ښېرا (بده دعا) وکړي ، بیا به الله تعالی دا قوم په یوه ناروغي مبتلا کړي او مړه به شي .
(۵) د «دُخان» دود نښانه :
یوه ورځ به پر اسمان یو خاص ډول دود وغوړیږي ، او بیا به پر مځکه راواوریږي ، ددغه دود په سبب به مومنان خالي د زکام رنګه تکلیف محسوس کړي ، خو د کافرانو سرونه به داسي شي لکه پراور چې پې نیولې وي ، دا دود به څلوېښت ورځې دوام ولري ، کله چې دود پرختمېدو شي نو د لوی اخترورځ به رانژدې شي .
(۶) : د لویدیزله لوري د لمرراختل :
د ذي الحجې له لسمې وروسته به یوه شپه ډېر اوږده شي ، تردې چې ماشومان به له ډېره خوبه ستړي شي ، خلک به پریشانه شي ، حیوانان به نعرې وهي ، خوسهارکیږي به نه .
تردې چې دغه شپه د دریو شپو برابرته رسیږي نولمربه د مغرب له لوري له یوڅه روښنایي سره راښکاره شي ، او دومره به راپورته شي لکه څومره چې لمرتر غرمې مخکې وي . او بیرته به د مغرب لور ته ډوب شي .
له دې وروسته به بیرته د نورو عامو وروځو په څیر له مشرق څخه راپورته کیږي .
له مغرب څخه ترلمرراختلو وروسته به د توبې دروازه بنده شي ، کافربه له کفر او ګنهګاربه له ګناه څخه توبه باسي خو هغه توبه به اعتبارنه لري .
(۷) دابَّةُ الأرض :
له دې وروسته به په مکه مکرمه کې د صفا غرله زلزلې څخه وچاودي ، او له هغه څخه به یو عجیبه او نادره حیوان راووځي ، سربه یې د غوایي ، سترګې د خنزیر ، غوږونه د پیل ، غاړه د شترمرغ ، سینه د زمرې ، اود جسم رنګ به یې د پړانګ په څیروي ، بغلونه به یې د پشي او لکۍ به یې د پسه په ډول وي .
د حضرت موسی عليه السلام لکړه ، او د حضرت سلیمان عليه السلام انګشترۍ (ګوتمۍ) به ورسره وي .

د هر مومن او کافر پر تَندي به نښان لګوي ، په ټوله دنیا کې به وګرځي ، له خلکو سره به خبرې کوي ، هغه ته په کتلو سره به کافر ایمان راوړي خو ګټه به نه ورته کوي .

(۸) : د یِمَن اور :

بیا به له یمن څخه یو اور راپورته شي ، چې خلک به د محشر (شام هیواد) ته پسې اخلي ، قرآن کریم به د خلکو له سینو او له ورقو څخه پورته شي .

(۹) : د مومنانو مرګ :

څه وخت وروسته به یوه ډېره خوندوره هوا راشي ، او د ټولو مومنانو روحونه به قبض کړي ، په دنیا کې به یوازې د کفارو او بدکارانو کړني ترسره کیږي ، پر حکومت به د حبشې کافران مسلط شي ، کعبه به ونړوي .

درې څلور کاله به همداسې تېر شي ، چې ناڅاپه به د جمعې په ورځ د محرم الحرام په لسمه حضرت اسرافیل د صور (شپېلۍ) پوه کړي او پر بدترینه خلکو به قیامت راشي .

# حَشر ، نَشر او پل صِراط :

پوښتنه (۴۰) :

حشر او نشر ، یا عالمِ آخرت څه شی دی ؟

جواب :

له لومړي «صور» پوه کولو وروسته چې کله ټول عالَم نیست او نابود شي ، تر دې چې پخپله حضرت اسرافیل ته به هم مرګ راشي ، او له الله تعالی پرته هر څه به فَنا شي .

په دوهم ځل شپېلۍ پوه کولو سره به ټول عالَم بیرته راژوندی شي ، مړي به له قبرونو څخه ژوندي راووځي ، او ټول به سره یو ځای شي ، بیا به د حَشَرمیدان ته روان شي .

همدغه دوباره ژوند ته حَشر او نشر ، یا تر مرګ وروسته ژوندي کېدل وایي .

پوښتنه (۴۱)

د آخرت ، او د حشر د میدان څه حالات راته بیان کړئ !؟

جواب :

دوهم وار چې کله ټول عالَم را بیدار او خلک راژوندي شي نو لمر به د یوه میل په اندازه را ټیټ شي ، او خلک به د خپلو اعمالو له فکره په خولو کې غرق وي ، ځیني به تر بجلکو ، ځیني تر ځنګنونو ، ځیني تر نامه ، او ځیني به تر خولې پورې په خولو کې ډوب وي .

دغه ورځ به خلک له نشې کولو پرته مدهوش او نشه وي .
ټول انسانان به د حساب او کتاب لپاره د قیامت په میدان کې را یو ځای شوی وي .
زموږ د خوږ نبي ﷺ په سپارښتنه به حساب او کتاب پیل شي .
د ټولو سره به حساب وشي ، عملنامې به وتلل شي ، د هغه لپاره به «میزانِ عَدل» یعني د انصاف تله ودرول شي ، چې په راسته پله کې به یې ښه عملونه او چپه پله کې بد عملونه کیښودل شي .
د چا چې د نیکیو طرف درونډ شو ، نو هغه ته به د عملونو کتاب په ښي لاس کې ورکول شي . (الله دي موږ له هغوی څخه وګرځوي آمین) .
او د چا چې د بدو عملونو طرف درونډ شو نو د هغه عملنامه به په چپ لاس کې ورکړل شي (الله دي موږ په دوی کې نه شماري آمین).
نیکان به د خوشحالۍ له وجې خپله عملنامه هر چا ته ورښکاره کوي ، او بدکاران به د افسوس او حسرت په حال کې ګرځي.
بیا به ټول پرپُلِ صِراط تېرېږي .

پوښتنه (۴۲) :

پلِ صراط څه شی دی ؟

جواب :

دا یو پُل دی چې تروربښته نری او ترتوري تېره او تېز دی . د جهنم پرسرتېرسوی دی .
ټولو ته به پر دغه پُل د تېرېدلو حُکم وشي .
نیکان به پر دغه پُل عبور وکړي او جنت ته به ځانونه ورسوي (اللهم اجعلنا منهم)
او کفار او بدکاران به له پُل څخه لاندې دوږخ ته ولوېږي .

پوښتنه (۴۳) :

ایا ګنهګار مسلمان به هم جهنم ته ځي!؟

جواب :

هو!
هغه مسلمان چې په دنیا کې یې د الله نافرماني کړې وي ، توبه یې نه وي ایستلې ، هغه به د الهي قانون له مخې جهنم ته ځي ، کله چې هلته د خپلې ګناه سزا کاټ کړي او پاک شي نو بالاخره به جنت ته ځي .

بلکې که په چا کې یوه ذره ایمان هم وي ، یا یې کلمه ویلې وي خوهیڅ نېک عمل یې نه وي کړی ، نوهم به د الله په فضل بالآخره جنت ته ځي .

هو!

که یوګنهګارالله پاک پخپل فضل معاف کړي ، هغه به بېله دې چې جهنم ته ولاړشي ، سیده جنت ته ځي .

د اسلامي عقیدو دغه مختصره رساله پرهمدې ځای پای ته ورسېده ولله الحمد والمنة .

ددغې رسالې له ژباړې ، ترتیب او تصحیح څخه د فراغت نېټه :
شنبه د ۱۴۳۹هـ د جمادی الأول ۱۸مه
هفته/ ۳ /فروری/ ۲۰۱۸ م

الله تعالی دې په خپل دربار کې قبوله ، او د انسانانو د استفادې وړ وګرځوي آمین

زموږ د فېسبوک صفحه page :
مولوي باقي بالله فضلي